

د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب د پراختيا او د
ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
کتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونکي لارښود

# د ژوند مهارتونه

## دريم ټولګی



د ښوونکي لارښود د ژوند مهارتونه دريم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ ش.






**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب
# د ژوند مهارتونو د تدریس لارښود
# دریم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش








**ليکوالان:**

- د سرمؤلف مرستياله ترينا ستار محب زاده د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړې

**ژباړه:**

- مؤلف نسيمه عبدالرحيمزئ د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړې
- د مؤلف مرستيال غلام حسين سليمانزی د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړی

**علمي او مسلکي اډيټ:**

- د مؤلف مرستيال غلام حسين سليمانزی د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړی

**د څارنې کمېټه:**

- دکتور اسد الله محقق د پوهنې د وزارت د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او ی‌ـد ساينس د مرکز مرستيال
- دکتور شېرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې رييس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف عمومي رييس

**کمپوز او ډيزاين:**

عبدالحق "مومند"






# ملي سرود

| | |
|---|---|
| دا وطن افغانستان دی | دا عزت د هر افغان دی |
| کور د سولې کور د تورې | هر بچی یې قهرمان دی |
| دا وطن د ټولو کور دی | د بلوڅو د ازبکو |
| د پښتون او هزاره وو | د ترکمنو د تاجکو |
| ورسره عرب، گوجر دي | پامیریان، نورستانیان |
| براهوي دي، قزلباش دي | هم ایماق، هم پشه یان |
| دا هیواد به تل ځلیږي | لکه لمر پر شنه اسمان |
| په سینه کې د اسیا به | لکه زړه وي جاویدان |
| نوم د حق مودی رهبر | وایو الله اکبر وایو الله اکبر |




**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزير پيغام**

ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختيا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعليمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتياوو له مخې رامنځته کېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنيزې اړتياوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعليمي نصاب هم علمي او رغنده بدلون ومومي. البته نه ښايي چې تعليمي نصاب د سياسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هيلو تابع شي.

دښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتيب شوی دی. د تدريس د نويو ميتودنو له مخې فعاليتونه په کې ورزيات شوي دي. د زده کړې په بهير کې د زده کوونکو فعال ساتل د درسي پلان برخه شوې ده.

هيله من يم د دې کتاب منځپانګه، چې له لارښوونو او تعليمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د ميتودونو د کارولو له لارې تدريسيږي، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه غوښتنه کيږي، د خپلو لوڼو او زامنو په باکيفيته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې د پوهنې هيلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعليمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونده مسؤوليت لري.

د پوهنې وزارت تل زيار کاږي چې د پوهنې تعليمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دين له بنسټونو او علمي معيارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتياوو له مخې پراختيا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصيتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه هيله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده وړانديزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تاليف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتيب کې يې مرسته کړې، له ملي او نړيوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعليمي نصاب په چمتو کولو او تدوين ، د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې يې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفيق

دکتور اسدالله حنيف بلخی

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې وزير




# د ښوونکي له کتاب څخه په سمه توګه د ګټه اخیستلو لارښوونه

ښاغلی ښوونکی، د وطن د بچیانو د اړتیا او ماشومانو کې د بې مسؤولیتۍ د بې ځایه فرهنګ د لرې کولو او د مسلمانانو سوله غوښتونکې، مبتکر او با عاطفي وګړو په توګه هغوی جوړول او ماشومانو کې د مثبت ذهنیت د منځته راتلو لپاره په افغانستان کې د یوې سالمې ټولنې جوړولو ته هیله مند و اوسو. ددې هیلو د لاسته راوړلو په خاطر لازمه ده چې یو رښتینی ښوونیز چاپېریال منځته راوړو.

ښوونیز چاپېریال: ښاغلی ښوونکی، سره له دې چې د نورو مضامینو د اړتیاوو له کبله لازمه وګڼله شوه چې د ژوند د مهارتونو مضمون ته په اوونۍ کې یو ساعت وخت ورکړي نو ځکه د درسي کتاب په جوړښت کې لږ بدلون راغلی دی خو د پخواني فعالیت څخه ګټه اخېستل کیږي.

– لوست د لومړني فعالیت سره پیل کړئ د موسکا او خوښۍ سره کوښښ وکړئ چې د ښوونیزې فضا ښاد کړئ.

– د زده کوونکو خبرو ته غوږ ونیسئ، پوښتنو ته یې ځواب ورکړئ او د هغوی هر پرمختګ د تشویق وړ وګڼئ.

– معیوبو، کم جرأتو او ګوښه ناستو زده کوونکو ته ډېر پام وکړئ.

د لوست لپاره تیاری: تر ټولو مخکې د لوست موضوعات او موخې خپل ځان ته واضح کړئ. د فعالیتونو لپاره درسي اړین توکي د ساده محیطي موادو څخه جوړ کړئ. درسي پلان ولرئ د فعالیتونو د ترسره کولو او د انځورونو د تحلیل، د موضوع مطرح کول او کیسه کول په ساده ژبه ځان تیار کړئ.

د تدریس تګلاره: د لومړنیو فعالیتونو څخه وروسته کوښښ وکړئ چې د هر لوست ښوونیزې موخې چې د ښوونکي په لارښود کې راغلي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي په آګاهانه ډول لوست ته ننوځي چې څه به زده کړي او کوم عملي مهارتونه ترلاسه کړي.

– د (وواياست) د سرلیک لاندې انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ، زده کوونکي د خپلې پخوانۍ پوهې پر بنسټ آفاقي ځوابونه ورکوي. دا تاسو سره مرسته کوي چې د زده کوونکو پخوانۍ پوهې سره اشنا شئ او په هوسا توګه لوست پیل کړئ. کوښښ وکړئ د زده کوونکو د سمو ځوابونو په تایید سره د لوست سرلیک ته اشاره وکړئ او هغه پر تخته ولیکئ. هغوی نوي لوست ته متوجه کړئ او کولای شي چې د هغوی د ځوابونو څخه د سریزې په توګه ګټه واخلي.

– د (په انځورونو کې څه وینئ) په فعالیت کې ٤-٦ کسیزې ډلې مخکې له مخکې وټاکئ او ددې ډلو څخه تل په همدې فعالیتونو کې ګټه واخلئ. د ډلې د کمزورتیا په صورت کې کولای شئ چې د ډلې غړي بدل کړئ.




هغوی انځورونه ګوري او تبصرې کوي او نظر ورکوي بیا د ډلې استازي وټاکئ چې د زده کوونکو نظرونه نورو ته بیان کړي او نورو ډلو سره د نظر تبادله وکړي. بیا د زده کوونکو د وینا په تایید د انځورونو په هکله لا زیاته رڼا واچوئ.

– د ډله ییز کار څخه وروسته د (غوږ ونیسئ او ووایاست) تر سرلیک لاندې دوه یا درې کرښې په نظر کې نیول شوي چې تاسې د لوست موخې رسېدو ته نږدې کوي. هغه په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې څه زده کوي. که یو بل زده کوونکی بیا د کتاب له مخې ولوستل شه که نه د هغوی پوښتنه وکړئ چې څه یې زده کړي دي. یو دوه کسان په ساده ژبه د لوست مفهوم بیان کړي. په دې برخه کې د حواسو جمع کول، غوږ نیول، درک کول او د پوهېدلو مهارتونه مطرح دي نه املا او انشا.

– په نورو ډله ییزو یا تمثیلي فعالیتونو کې (د ډرامو ترسره کول) او کیسه کول داوطلب زده کوونکي تشویق کړئ او د هغوی له سرته رسوونو لپاره زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، زده کوونکي د وخت په تېرېدو سره دې ډول فعالیتونو سره عادت کوي او د هغوی څخه خوند اخلي او نور مهارت ترلاسه کوي.

– د (ووینئ او اړیکه ورکړئ یا ولولئ او اړیکه ورکړئ) په فعالیت کې زده کوونکي په ځانګړې توګه د کتاب مخ ته په ځیر ګوري او د خپل درک پر بنسټ د انځورنو څخه مفهوم اخلي او نوبت نیسي. کوښښ وکړئ چې زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظر وړاندې کړي. په پای کې خپل نظر ووایاست او په هر فعالیت کې چې کوم زده کوونکي برخه نه اخلي، فعالیت ته یې ورګډ کړئ.

دا فعالیتونه کولای شي چې لوست لاتحکیم کړي او تاسو د مفهومونو د درک او لازمو مهارتونو د ترلاسه کولو له امله اطمینان پیداکړئ.

– په پای کې یو فعالیت د (پوښتنو ته ځواب ورکړئ) په نامه شته چې په حقیقت کې یوه ارزونه ده چې تاسو د لوست د پیله څخه تر پایه پورې ترسره کوئ. دا پوښتنې تاسو سره مرسته کوي چې د خپل تدریس کړنلاره په څه ډول ځواکمنه کړئ او یا هغه بدله او ښه کړئ.

– په پای کې کورنۍ دنده چې کتاب کې راغلې هغه زده کوونکو ته ووایاست چې د هغوی پام ورته واړول شي او په خپل وخت یې ترسره کړي.




# لړلیک


لومړی لوست ........ ۱
دویم لوست ........ ۳
دریم لوست ........ ۵
څلورم لوست ........ ۷
پنځم لوست ........ ۹
شپږم لوست ........ ۱۱
اووم لوست ........ ۱۳
اتم لوست ........ ۱۵
نهم لوست ........ ۱۷
لسم لوست........ ۱۹
یوولسم لوست ........ ۲۱
دولسم لوست........ ۲۳
دیارلسم لوست ........ ۲۵
څوارلسم لوست ........ ۲۷
پنځلسم لوست........ ۲۹
شپاړسم لوست........ ۳۱
اوولسم لوست........ ۳۳
اتلسم لوست ........ ۳۵
نوولسم لوست........ ۳۷
شلم لوست........ ۳۹
یوویشتم لوست ........ ۴۱
دوه ویشتم لوست ........ ۴۳
درویشتم لوست........ ۴۵
څلیرویشتم لوست ........ ۴۷
پنځه ویشتم لوست ........ ۴۹
شپږویشتم لوست ........ ۵۱
اووه ویشتم لوست ........ ۵۳
اته ویشتم لوست........ ۵۵

# لومړی لوست

وخت : ۴۵ دقيقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | په ځان باور لرل | د لوست موضوع |
| | پوهه: په ځان باندې د باور په څو طريقو پوه شي.<br>مهارت: په ځان باندې د باور د لاسته راوړلو له طريقو څخه عملاً کار واخېستلای شي.<br>ذهنيت: په ځان باندې د باور لرلو اهميت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د باور او اعتبار په کليمو پوهېدل، د باور لاسته راوړلو طريقې، د باور درلودلو اهميت | اساسي ټکي |
| | ځيني انځورونه او ځيني کيسې چمتو کول | د لوست مرستندويه توکی |
| | ډله ييز کار، پوښتنه او ځواب، کيسه | دتدريس ميتود |
| ۵ دقيقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ اخيستل، د نوي کال مبارکي، د کتاب په اړه ځيني لنډ معلومات | مقدماتي فعاليتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي په اسانی د لوست موضوع ته ننوځي. له هغوی څخه د (ووایاست) پوښتنې وکړئ. هغوی له پخوانی پوهې او کارونو څخه ځواب ورکوي. ښایي د هغوی ځوابونه د نوي لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. تشویق یې کړئ او د هغوی وینا په تایید د لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، ټولګی په ٤-٦ کسیزو ډلو وویشئ چې د انځورونو په فعالیتونو کې سره تل همکار اوسي. کله چې د ځینو ګروپونو څخه د بې وسی احساس کوئ، کولای شئ د ګروپونو په غړو کې بدلون راولئ. اوس له ګروپونو څخه وغواړئ چې د لومړي مخ انځورونه په ځیر وګوري او په هکله یې خپل نظر ورکړي او په پای کې له خپل منځ څخه یو استازی وټاکي. د ګروپونو د غړو نظرونه نورو ته بیان کړي او په پای کې دې د ګروپ غړي یو له بل سره نظرونه شریک کړي.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي ځواب ورکړي چې باور درلودل او باورل کول څه ته وایي؟ او څنګه لاسته راځي؟ د باور کولو پر اهمیت پوه شي. او پوه شي چې په ځان باندې د ښه کارونو د ترسره کولو څومره باور لري په دې فعالیت کې ستاسو برخه نېغ په نېغه ده که څه هم په نورو فعالیتونو کې تاسې یو مرسته کوونکی یاست ولې په دې فعالیت کې د زده کوونکو پام د کتاب مخ ته راواړوئ او له هغوی څخه وغواړئ چې غوږ ونیسي چې له (ځیر شئ) تر عنوان لاندې متن څخه څه موخه اخلي. وروسته پوښتنه وکړئ چې څه پوه شوي دي په ساده ژبه یې ووایي. له موضوع څخه مفهوم واخلي چې په راتلونکي کې یو ښه اورېدونکی شي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره، زده کوونکي ډله ییز فعالیت ترسره کړي او په ځان باندې د باور د ترلاسه کولو په طریقو خپلو کې سره بحث وکړي او ووایي چې د کومو کارونو د ترسره کولو څخه ډډه وکړي. په پای کې ډلې د خپل کار پایله بیان کړي او بلې ډلې سره نظر شریک کړي اساسي ټکي تاسو هم تکرار کړئ. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتئ. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | په دې اړه فکروکړئ د کومو ښو کارونو په ترسره کولو کې پر ځان باور لري. | ۲ دقیقې |



# دویم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | پرېکړه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید پوه شي چې کله او څرنګه تصمیم ونیسي.<br>مهارت: د یوه ښه تصمیم نیولو لپاره فکر وکړای شي.<br>ذهنیت: د سم تصمیم اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | تصمیم نیول، فکر کول، او عملي کول یې | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم او ځینې کیسې | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ او د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي ځواب ورکړي. ښايي د هغوی آفاقي ځوابونه د لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. د لوست سره ورته اړیکه ورکړئ او د لوست سرلیک د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له ډلو څخه وغواړئ چې د دریم مخ انځورونو ته وګوري او هغه څه چې اخلي، نظر ورکړي. د ډلې استازي نظرونه په لوړ اواز وايي او نورو ډلو سره نظر شریک کړي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي د تصمیم نیولو مخکې او سنجش کولو په هکله په هغه څه چې پوهیږي، ځواب ورکړي. تاسو د لوست متن ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې ښه غوږ ونیسي. هغه څه چې درک کوي، نوبت ونیسی او بیان یې کړي چې څومره پوه شوي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د کیسه وکړئ په فعالیت کې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ووايي چې د کوم تصمیم په نیولو د تشویق وړ ګرځېدلي او هم کیسه وکړي چې د کوم ناسم تصمیم په نیولو سره مو پښېماني ښکاره کړې ده او که نه؟ | ۸ دقیقې |
| ارزونه | د لوست د پای پوښتنې له زده کوونکو وپوښتئ چې هر زده کوونکی په خپل وار ځواب ورکړي. د ځوابونو په منځ کې به مهم ټکي تکرار شي او هم موخې ته د رسېدو اطمینان ترلاسه شي. | ۵ دقیقې |
| کورني کار | په ښه ډول د کورنۍ دندې سرته رسولو لپاره څه اراده لرئ. | ۲ دقیقې |



# دریم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | جرأت | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي د اخلاقي جرأت په اړه پوه شي.<br>مهارت: د خپل اخلاقي جرأت څخه سمه ګټه واخیستی شي.<br>ذهنیت: د جرأت درلودلو اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د اخلاقي جرأت پېژندنه او له بداخلاقۍ سره یې توپیر کول | اساسي ټکي |
| | کتاب، قلم، کتاچه، ځینې انځورونه او کیسې | د لوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب او تمثیل | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي ښه پوه شي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. ښايي د زده کوونکو آفاقي ځوابونه د لوست د پیل لپاره یوه ښه سریزه وي. تاسو هغوی تشویق کړئ او د لوست موضوع پر تخته ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی، له واردمخه ټاکل شوو ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۵ مخ انځورونه وګوري د خپلې ډلې د غړو په مشوره نظر ورکړي. د ګروپ استازي د ټولو نظرونه په لوړ غږ وايي او له نورو سره یې شریکوي.<br>– د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ، سم ځوابونه تکرار کړئ او د بې ځایه کارونو او شوخۍ په اړه چې د نورو د غوصې سبب کیږي، لږه توضیح ورکړئ. له خپل جرأت څخه سمه ګټه پورته کړئ؛ مثلاً: که ناحق ملامت کیږي ښښنه وغواړي او په جرأت ووايي چې ددې لامل ندی. د ځیرشئ متن ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې واوري او وروسته چې څه پوهیږي نورو ته یې په ساده ژبه بیان کړي او یو له بل سره پرې تبصره وکړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره زده کوونکي په ډلو وویشئ او دنده ورکړئ چې د اخلاقي جرأت د ګټو د اهمیت په هکله خبرې وکړي، وروسته د خپل کار پایلې بیان کړي، له نورو سره نظر شریک کړي او ښه نظرونه تکرار کړئ. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه د لوست د پای پوښتنې وکړئ چې د ځوابونو ترلاسه کولو څخه ډاډمن شئ چې زده کوونکي تر کومه د لوست موخو ته رسېدلي دي او کوم کارونه په جرأت سره سرته رسوي او هم ووايي چې په ورځنیو چارو کې د اخلاقي جرأت اهمیت څه دی. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د اخلاقي جرأت د اهمیت او بې ځایه جرأت درلودلو زیان په هکله خپل والدینو ته ووایاست. | کورنی کار |



# څلورم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | نیک چلند | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید د نورو سره د نېک چلن په طریقو پوه شي.<br>مهارت: په ښه چلن سره نېکو اړیکو ته تحکیم ورکړای شي.<br>ذهنیت: له نورو سره د نېک چلن څخه د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکی | له نورو سره نېک چلن او طریقې، د دوستۍ ټینګښت او ښې اړیکې | |
| د لوست مرستندویه توکی | کتاب، قلم، کتابچه او ځیني انځورونه | |
| د تدریس میتود | ډله ییزکار، پوښتنه او ځواب، کیسې | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي ښه پوه شي چې څه لولي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې له خپلې پوهې څخه آفاقي ځواب ورکړي. ښايي د هغوی ځوابونه د نوي لوست د پیل لپاره ښه سريزه وي. د لوست عنوان د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له ډلو څخه وغواړئ چې د ۷ مخ انځورونه وګوري او د هر يوه په هکله نظر وړاندې کړي. وروسته د ډلو استازي د ټولو نظرونه نورو زده کوونکو ته د انځور پرمخ بیان کړي او نظرونه سره شریک کړي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې وکړئ چې د ټولو زده کوونکو پام له نورو سره د نېک چلن اهمیت ته واړول شي او تل د دوستۍ د ټینګښت لپاره له رښتینولۍ او پايدارۍ کار واخلي.<br>- ښاغلی ښوونکی، د (ځیرشئ) متن ته د زده کوونکو پام راواړوئ. چې ښه غوږ ونیسي چې څه مفهوم يې اخیستی دی. وروسته له هغوی څخه وغواړئ چې په هغه څه چې پوه شوي دي په ساده ژبه بیان کړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست تحکیم لپاره د زده کوونکو له ډلو څخه وغواړئ چې د نورو سره د نېک چلن په هکله خبرې وکړي او مثالونه ورکړي او هم ووايي چې د نورو سره د نېک چلن کول د څه شي لامل کیږي او زموږ په ژوند کې څه اغېزه لري. بیا نورو سره د نظرونه تبادله کړي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې د لوست تطبیق او موخو ته د رسېدو اطمېنان لاسته راوړي او هغوی د نېک چلن اهمیت او ګټې درک کړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د نېک چلن د ګټو او اهمیت په هکله خپلو والدینو سره بحث وکړئ او نتیجه واخلئ. | ۲ دقیقې |



# پنځم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | عامه شتمنی | د لوست موضوع |
| | پوهه: د عامه شتمنی نمونې وپېژني.<br>مهارت: له عامه شتمنیو څخه ساتنه وکړای شي.<br>ذهنیت: له عامه شتمنیو څخه د سمو ګټو اخېستلو اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د عامه شتمنیو پېژندنه، د سمو ګټو اخېستلو په طریقې پوهېدل | اساسي ټکي |
| | قلم، کتابچه، ځینې انځورونه او کیسې | دلوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، پوښتنه او ځواب او تمثیل | د تدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ. له هغوی څخه د (وواياست) پوښتنې وکړئ. ښايي هغوی له خپلې پخوانی پوهې څخه ځواب ورکړي او د هغوی ځوابونه به د نوي لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. عنوان د تختې پرمخ ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د انځورونو د لیدلو د فعالیت لپاره له ټاګل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ۹ مخ انځورونه وګوري د هر انځور په هکله خپل نظر ورکړي. د ډلې استازي دې د هغوی نظرونه نورو زده کوونکو ته د رسم پرمخ بیان کړي او نورو ډلو سره دې نظرونه شریک کړي. د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي ځواب ورکړي چې څرنګه له عامه شتمنی څخه ګټه اخلي او ساتنه یې کوي. - ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د ځیر شئ متن ته راواړوئ او په لوړ غږ یې ولولئ، له هغوی وغواړئ ښه غوږ ونیسي مفهوم یې درک کړي او نورو زده کوونکو ته یې په ساده ژبه ووايي. بیا یې مفهوم په ساده ژبه تکرار کړئ. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د تحکیم لپاره زده کوونکي په ډلو وویشئ چې هره ډله د عامه شتمنۍ نوم واخلي. د سمو ګټو اخېستلو ګټه او د ناسمو ګټو اخېستلو زیانونه لست کړي. وروسته د نظر وړاندې کولو څخه له نورو سره نظر شریک کړي. ښايي د لوست عمده ټکی ډېر تحکیم ومومي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ او وګورئ چې څومره یې عامه وسایل پېژندلي او څرنګه یې د ګټه اخېستلو طریقې بیانوی؟ او همداشان په ساتنه کې یې څنګه برخه اخېستي. نور زده کوونکي تشویق کړئ. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د عامه شتمنو ساتنې او اهمیت په هکله خپلو والدینو سره بحث وکړئ او دهغوی نظر واخلئ. | کورنی کار |



# شپږم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | سپما | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي د پیسو د بې ځایه مصرف، اوبو او برېښنا په مصرف او د مخنیوي په طریقو او اړتیاوو باندې یې پوه شي.<br>مهارت: د پیسو، اوبو او برېښنا له بې ځایه مصرف څخه مخنیوی وکړای شي.<br>ذهنیت: د بې ځایه مصرف څخه د مخنیوي اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | په ورځنیو چارو کې د پیسو، اوبو او برېښنا مصرف، له بې ځایه مصرف څخه مخنیوی او اهمیت یې درک کول | اساسي ټکي |
| | کتاب، قلم، کتابچه او ځینې انځورونه | د لوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي درک وکړي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي د خپلې مخکینۍ پوهې له مخې ځواب ورکوي چې ښايي د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. د نوي لوست سره ورته اړیکه ورکړئ او سرلیک د تختې پرمخ ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، له مخکې ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د درسي کتاب د ۱۱ مخ انځورونه په ځیر وګوري. له هر انځور څخه خپل برداشت بیان کړئ. د ډلې استازي دې نظرونه په لوړ غږ ولولي او نظرونه دې تبادله کړي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي د موضوع اهمیت درک کړي. هیڅکله برق، اوبه او پیسې بې ځایه مصرف نکړئ.<br>- د زده کوونکو پاملرنه د (ځیرشئ) متن ته راواړوئ. له هغوی څخه وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي او هغه څه چې یې درک کړي دي په ساده ژبه بیان کړي او هم د هغې د سمې ګټې اخیستنې په ګټه او د ناسمې ګټې اخیستنې په تاوان پوه شي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | - د لوست د ښه تحکیم لپاره له زده کوونکو وغواړئ چې د اوبو، برق او پیسو د بې ځایه مصرف کولو په هکله خبرې وکړي. مثالونه راوړي او هم د بې ځایه مصرف کولو نه د مخنیوي د طریقو په هکله نظرونه تبادله کړي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، پوښتنې مطرح کړئ چې په بې احتیاطۍ د اوبو، برق او پیسو د بې ځایه مصرف کولو په هکله پوه شي او د بې ځایه مصرف کولو د مخنیوي په هکله نظر ورکړي. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د بې ځایه مصرف کولو د مخنیوي د اهمیت په هکله خپلو والدینو سره بحث وکړئ. | کورنی کار |




# اووم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | ډله ییزکار | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د ګډ کار په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: په ګډ کار کې برخه واخېستلی شي.<br>ذهنیت: د ګډ کار ګټې درک کړای شی. | د زده کړې موخې |
| | د سم پلان په جوړولو کې د ستړیا نه حس کول | اساسي ټکی |
| | ځیني انځورونه او په هکله یې کیسې | د لوست مرستندویهه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست له موضوع څخه خبر شي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي په هغه څه چې پوهېږي په هکله یې آفاقي ځواب ورکوي. ښایي د هغوی ځوابونه د لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. تاسو هغوی تشویق کړئ او د هغوی ځوابونه لوست سره اړیکه ورکړئ. عنوان د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له پخوانیو ټاکل شوو ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۱۳ مخ انځورونو ته پام وکړي. د هر انځور په هکله د ډلې غړي خپل نظر وړاندې کړي او د ډلو استازي راټول شوي نظرونه په لوړ غږ نورو ته تشریح کړي او نورو ګروپونو سره نظر شریک کړي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. څو کسان یې په اړه خپل نظرونه وواییي. وروسته د هغوی د وینا په تایید په غور ځوابونه تکرار کړئ او خپله یې په هکله نظر ورکړئ.<br>- د (ځیر شئ) متن په لوړ اواز ولولئ له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي او په پای کې هغوی ته وخت ورکړئ. په هغه څه چې پوه شوي په خپله ساده ژبه بیان کړي او په هکله یې تبصره وکړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ډېر ټینګښت لپاره د ډلو څخه وغواړئ چې د څو ګډو کارونو نومونه واخلئ او کومې ګټې چې د هغوی د ترسره کولو څخه لاسته راځي، بیان کړئ. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د موخې د حاصلولو د اطمېنان لپاره د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ او وګورئ چې د دندو ویشلو په هکله په ګډ کار کې څه اهمیت دی؟ | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ګډ کار د ګټو په هکله د کورنۍ د غړو سره بحث وکړئ. | ۲ دقیقې |



# اتم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
| --- | --- | --- |
| | د کوچنیانو حقونه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د خپل ماشومتوب د دوران حقونه وپېژني.<br>مهارت: د ماشومانو حقونه بیان کړای شي.<br>ذهنیت: د ماشومانو د حقونو درک کولو سره علاقمند شی. | د زده کړې موخې |
| | د ماشومتوب دوران د څو حقونو پېژندل، د حق غوښتلو طریقه او اهمیت درک کول | اساسي ټکي |
| | کتاب، قلم، کتابچه او ځیني انځورونه | دلوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییز کار، پوښتنه او ځواب، توپیر او پیداکول | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضری اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست د فعالیتونو په بهیر کې ونډه واخلي. د (ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ ښايي د هغوی آفاقي ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. د ځوابونو څخه په ګټه اخیستلو سره د لوست موضوع پیداکړئ او پر تخته یې ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، د فعالیت پرمخ وړلو او انځورونو لیدلو لپاره له پخوا ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ۱۵ مخ انځورونه وګوري او هغه څه چې برداشت کوي د ډلو غړو ته وړاندې کړي. وروسته د ډلو استازي هغه په لوړ غږ نورو ته ووايي او د نظرونو تبادله وکړي.<br>- د (غوږ ونیسئ او ووایاست) پوښتنې له زده کوونکو وپوښتئ چې هغوی خپلو حقونو باندې پوه او د حق غوښتلو طریقو سره بلد شي. د لوست ځوابونه تکرار کړئ.<br>- ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د (ځیرشئ) متن ته راواړوئ او ترې وغواړئ چې ښه غوږ ونیسي او هغه څه چې د لوست نه یې زده کړي دي نورو ته په خپله ژبه بیان کړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | د لوست د تحکیم لپاره زده کوونکي په څو ډلو وویشئ او هرې ډلې ته دنده ورکړئ چې د ماشومانو له حقونو څخه دوه حقونه وټاکي. په مشورې سره هغه حقونو ته د رسېدو لپاره لارې وړاندیز کړي. وروسته خپل نظرونه بیان کړي او له نورو ډلو سره یې شریک کړي چې د لوست موضوع ښه تحکیم ومومي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې د زده کوونکو له ځوابونو څخه د لوست موخې ترلاسه شي. او هغوی خپل حقونه ښه درک کړي او ویې پېژني. | ۵ دقیقې |
| کورني کار | د ماشومانو حقونو د پېژندنې د اهمیت په هکله د مور او پلار سره بحث وکړئ. | ۲ دقیقې |



# نهم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | زما هیلې | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي خپلې مهمې هیلې وپېژني.<br>مهارت: زده کوونکي باید خپلو هېلو ته د رسېدلو کوښښ وکړي.<br>ذهنیت: د خپلو هېلو د بیانولو څخه د خوښۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | ښې هېلې درلودل، هېلو ته د رسېدلو کوښښ کول | اساسي ټکي |
| | کتاب، قلم، کتابچه او ځینې انځورونه | د لوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي لوست درک کړي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ، زده کوونکي له پخوانۍ پوهې څخه ځواب ورکوي. د هغوی وینا د لوست سره اړیکه ورکړئ او عنوان د تختې پرمخ ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د انځورونو د لیدلو ډله ییز فعالیتونو لپاره له ډلو څخه وغواړئ چې د ۱۷ مخ انځورونه وګوري او په هکله یې خپل نظرونه ووایي. د ډلو استازي د خپلو غړو نظرونه په لوړ غږ د رسم پرمخ تشریح کړي او نور ګروپونو سره دې نظرونه شریک کړي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې له زده کوونکي وپوښتئ چې هغوی دوستانو ته د هیلو ویلو اهمیت او د هغوی د مرستو جلبولو څخه خبر شي. سم ځوابونه تکرار کړئ. د زده کوونکو پام د کتاب (ځیر شئ) متن ته راواړوئ. متن ولولئ له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر غوږ شي. په هغه څه چې له لوست یې زده کړي دي نورو زده کوونکو ته په ساده ژبه بیان کړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ټینګښت لپاره زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د اوسمهال او راتلونکي هیلو په هکله فکر وکړي او دې هیلو ته د رسېدلو وړاندوینه وکړي. وروسته څو کسانو ته وخت ورکړئ چې خپلې هیلې بیان کړي او دې هیلو ته د رسېدلو لار وښایي چې څرنګه یې وړاندوینه کړې ده. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې د یوې ښې هیلې درلودلو اهمیت درک کړي او د خپل راتلونکي په اړه فکر وکړي، هیلې او هغوی ته د رسېدلو کوښښ وکړي. ښایي د هغوی ځوابونه تاسو د لوست د حاصلولو څخه مطمین کړي. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د یوې ښې هیلې درلودلو ګټې خپلو ملګروته ووایاست. | کورنی کار |



# لسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د نورو حقونه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکی باید پوه شي چې نور خلك هم حقونه لري.<br>مهارت: د نورو خلکو حقونو ته درناوی وکړي.<br>ذهنیت: د نورو خلکو له حقونو څخه قدرداني وکړي او اهمیت يې درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د نورو خلکو حقونه درک کول او د نورو حقونو ته درناوی | اساسي ټکي |
| | قلم، کتابچه، ځیني کیسې او انځورونه | د لوست مرستندويه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي درک کړي چې ټول خلک حقونه لري او په هوښیاره توګه لوست ته ننوځي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ د زده کوونکو آفاقي ځوابونه د لوست د سریز پیداکولو لپاره مرسته کوي. زده کوونکي تشویق کړئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | – ښاغلی ښوونکی، د درسي کتاب د ۱۹ مخ انځورونه وګوري او په هکله يې خپل نظرونه ووايي. د ډلو استازي د غړو نظرونه په لوړ غږ ووايي او شریک کړي.<br>– د (واورئ او وواياست) پوښتنې له زده کوونکو وپوښتئ چې هغوی پوه شي چې ماشومان او لويان پر ماشومانو حق او حقونه لري، باید د هغوی درناوی وکړي. د (ځیر شئ) متن ته پام وکړئ او په لوړ غږ ووايي. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ښه غوږ ونیسي او په هغه څه چې پوهیږي نورو ته يې په ساده ژبه ووايي. تاسو هم د لوست مفهومونه په ساده ژبه ووایئ. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو له ډلو څخه وغواړئ چې د مور او پلار، ګاونډیانو، ښوونکي، ماشومانو او ټولګیوالو د حقونو په هکله خپلو کې خبرې وکړي او نورو ډلو سره نظرونه تبادله کړي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | له زده کوونکو پوښتنې وکړئ چې ځواب ورکړي. د نورو خلکو د هیلو او حقونو درناوی څه ګټې لري؟ او یا چا سره خپلو هیلو ته د رسېدلو لپاره يې مرسته کړې ده او که څنګه؟ له ځواب څخه خپل اطمینان لاسته راوړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | په کور کې له مور او پلار، خویندو، وررونو او ګاونډیانو د حقونو په هکله خپلو ملګروته بیان کړئ. | ۲ دقیقې |




# یوولسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | ستاینه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د نورو خلکو د قدردانۍ اهمیت وپېژني.<br>مهارت: د نورو خلکو د قدردانۍ کولو ښېګڼې درک کړای شي.<br>ذهنيت: د نورو خلکو د قدردانۍ کولو څخه د خوښۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | قدرداني او احترام کول، د قدردانۍ اهمیت درک کول | اساسي ټکی |
| | قلم، کتابچه او ځيني انځورونه | د لوست مرستندويه توکی |
| | ډله ییزکار، پوښتنه اوځواب | دتدريس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي خبر شي. د (ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ. کېدای شي د هغوی ځوابونه د لوست د پیل لپاره یوه ښه سریزه وي. له هغې څخه په ګټه اخېستنې سره د لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، د ګروپ له غړو څخه وغواړئ چې د کتاب ۱۹ مخ انځورونو ته په ځیر سره وګوري. کوم برداشتونه چې ترې اخلي په خپلو منځونو کې یې سره شریکې کړي. بیا د ګروپ استازي نظرونه راټول کړي او نورو ته دې وړاندې کړي.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې له زده کوونکو وپوښتئ چې هغوی خپل او د نورو د قدر وړ کارونه وپېژني او له نورو څخه د قدرداني کولو په اهمیت پوه شي، سم ځوابونه تکرار کړئ.<br>- د (ځیرشئ) د متن په خاطر د زده کوونکو پاملرنه جلب کړئ او هغه په لوړ اواز ولولئ. وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په هغه څه چې پوه شوي دي په ساده ژبه بیان کړي. تاسې به هم د لوست مهم ټکي په ساده ډول بیان کړئ. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم په خاطر تمثیلي پارچه تشریح کړئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په خپله خوښه رول ولوبوي. چې د یو بل د ښو صفتونو څخه په څه ډول قدرداني کوي. څومره یو بل ته ګران دي. څو ګروپونه کولای شي په خپله خوښه تمثیل تکرار کړي تاسې هغوی وهڅوئ. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | له زده کوونکو پوښتنې وکړئ. چې هغه الفاظ چې د قدرداني کولو په خاطر ویل کیږي لست کړي او هم په دې پوه شي چې د انسان کوم صفتونه او یا هغه کارونه چې کوي یې، ښایي د ستاینې وړ وي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ستاینې وړ اود نورو له ښو کارونو د اهمیت په هکله خپلو والدینو سره بحث وکړئ. | ۲ دقیقې |



# دولسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | پوهېدل او پوهول | د لوست موضوع |
| | پوهه: د ښه پوهېدلو او ښه پوهولو پر اهمیت پوه شي.<br>مهارت: د افهام او تفهیم له سمو طریقو څخه کار واخېستلای شي.<br>ذهنیت: له ښه پوهېدلو او ښه پوهولو څخه د خوښۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | یو بل په خبرو پوهول او پوهېدل | اساسي ټکی |
| | قلم، کتابچه، ځیني انځورونه، کیسې | د لوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییزکار، سوال اوځواب، تمثیل | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست له اصلي موضوع څخه خبر شي او په آګاهانه ډول پکې ګډون وکړي. د (ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ، ښایي د زده کوونکو آفاقي ځوابونه د لوست لپاره ښه سریزه وي. تاسې سم ځوابونه تکرار او د لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د انځورونو د لیدلو فعالیت لپاره مخکښینو ګروپونو ته دنده ورکړئ چې د ۲۳ مخ انځورونه په ځیر سره وګوري او مشوره او نظر ورکړي. وروسته د ګروپ استازی نظرونه په لوړ اواز نورو زده کوونکو ته وایي او زده کوونکي خپل نظرونه سره تبادله کړي. د (واورئ او ووایاست) پوښتنې له زده کوونکو وپوښتئ چې پوه شي. که چېرته په عادي خبرو یا د یوې دعوا د مسئلې د حل لپاره د سم افهام او تفهیم کارونه ونشي، ښایي جنګ جوړ شي، موضوع غټه او مطلب حل نشي.<br>- د ۲۲ مخ متن په لوړ اواز ولولئ له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ښه ځیر سره غوږ ونیسي هغه څه چې یې برداشت کړي دي، نورو ته بیان کړي. تاسې له هغوی سره مرسته وکړئ او د لوست مفهوم په ساده ډول تکرار کړئ. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د مفهوم د تحکیم په خاطر درې کسیزه ګروپونه جوړ کړي چې تمثیل وکړي. لومړی ګروپ ښه پوهېدلو او پوهولو چې مطلب پکې حل کیږي هر یو خوشحاله کیږي. دویم ګروپ د ناسمو پوهېدلو او پوهولو، چې مطلب پکې نه حل کیږي، بالآخره دعوا صورت نیسي له نورو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دواړو تمثیلونو نتیجه بیان کړي او دلیل ووایي چې ولې؟ | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | د لوست په پای کې له زده کوونکو پوښتنې وپوښتئ چې اطمینان حاصل کړي چې د تدریس طریقه څرنګه وه او څومره زده کوونکي پوه شوي دي. د مسئلې له اهمیت څخه یې څومره ګټه پورته کړې ده او آیا کوښښ به وکړي چې د پوهېدلو او پوهولو قوه په خپل ځان کې ځواکمنه کړي. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د ښه افهام او تفهیم د اهمیت په هکله خپلو والدینو سره خبرې وکړئ. | کورنی کار |







# دیارلسم لوست

مخ: ۲۵ – ۲٦

وخت: ۴۵ دقیقې

| وقت | د مطلبونو شرحه | مطلبونه |
| --- | --- | --- |
| | څه ډول زده کړو | د لوست عنوان |
| | زده کوونکي د زده کړې په څو طریقې بلد شي<br>د ښه زده کړې طریقې و ټاکلی شي<br>د ښه زده کړې د طریقې اهمیت درک کړي | ښوونیز اهداف |
| | د ځینو ښوونیز و طریقو پیژندل لکه: ځانی لوستنه د لوستونو تکرار، مرسته غوښتل او یا د نورو سره مرسته | نکات اساسی |
| | قلم، کتابچه او د ماشومانو ځینی مجلی. | مواد ممد درسی |
| | ډله ایز کار، پوښتنه او ځواب | روش تدریس |
| ۵ دقیقې | سلام اچول او روغبړ، دوخت تنظیمول، حاظري اخیستل، د کورنی دندې لیدل، د تېر لوست پوښتنه او نوی لوست سره د هغه اړیکه | فعالیت های مقدماتی |







| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | ګران ښوونکي د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړي ترڅو زده کوونکي په آګاهانه ډول نوي لوست ته داخل شي. دوواياست پوښتنې مطرح کړئ. څو د فکر کولو لپاره ښه انګیزه و اوسي. هغه څه چې په ځواب کې وايی، ښايی د لوست لپاره يوه ښه سريزه وي. د ځوابونو څخه په ګټه اخيستو او د نوي لوست سره اړيکه ورکولو سره، عنوان د تختې پرمخ وليکئ. | ۵ دقیقې |
| د لوست وړاندی کول | - ګران ښوونکي د ټاکل شوی ډلو څخه وغواړئ څو د کتاب د ۲۵ مخ انځورونه وګوري. او هغه څه دوی برداشت کوی نوروته هم نظر ورکړي. د هرې دلې استازی د نوروغړو نظرونه توحيد کړي او نوروته تشريح کړي او د مخ د انځور په هکله نظرونه سره تبادله کړي<br>- د( اوره او ووايه ) پوښتنې مطرح کړئ. سم ځوابونه تکرار کړئ او هم د هغوی سره مرسته وکړئ ترڅو د زده کړې ښې طريقې وټاکي<br>- د زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ۲۶ مخ د ( پام وکړئ) د لوست متن ته متوجه شي. متن په لوړ غږ ولولئ اوله هغوی څخه وغواړی چې په ځير غوږ ونيسي او په هر څه چې پوهيږي په ساده ژبه نوروته بيان کړي.<br>- تاسی هغوی سره مرسته او تشويق يی کړئ. مفهومونه ساده او بيا په شفاهي توکه تکرار کړئ. | ۲۰ دقيقې |
| د لوست تینګښت | - د لوست د تينګښت لپاره،ډلو ته ونده ورکړئ ترڅو د زده کړی د مناسب ميتود په هکله يو بل سره د نظر تبادله وکړي. د زده کړې تر ټولو ښه ميتود و تاکي او دليل يی هم بيان کړي | ۸ دقيقې |
| ارزونه | - د لوست د پايی پوښتنې مطرح کړئ ترڅو د زده کړې ښې طريقې بياځلې تکرار شي. او په پايله کې تا سو د لوست د موخې د ترلاسه کولو څخه مطمئن شئ، | ۵ دقيقې |
| کورنۍ دنده | د خپلې خوښې زده کړې طريقې يادداشت او نوروته بيان کړي. | ۲ دقيقې |




# څوارلسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | له اړو کسانو سره مرسته | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي له اړو او غریبو خلکو سره د مرستې پراهمیت پوه شي.<br>مهارت: زده کوونکي په عمل کې له غریبو او اړوخلکو سره مرسته وکړي.<br>ذهنیت: له داسې خلکو سره په مرستې کولو سره د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | له بې وزلو سره د مرستې د څو طریقو درک، صبر، حوصله او شکرکول | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم، ځیني انځورونه او کیسې | |
| دتدریس میتود | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست بنسټیز ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست له موضوع څخه خبر شي. د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي په هغه څه چې پوهېږي بیان کړي. د هغوی ځوابونه کېدای شي د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. هغوی وهڅوئ او د لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | ښاغلی ښوونکی، د ټاکل شوو ګروپونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د انځور لیدلو په فعالیت کې یو له بل سره کار وکړي. انځورونه په ځیر سره وګورئ. خپل نظرونه او برداشت له نورو سره شریک کړئ. د ګروپ استازی دې نظرونه راټول کړي او په لوړ اواز دې هر انځور تشریح کړي. له نورو ګروپونو سره دې نظر شریک کړي.<br>د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي له بې وزلو او محتاجو خلکو سره د مرستې کولو دلیلونه راوړي. سم ځوابونه تکرار کړئ او هغوی وهڅوئ.<br>له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د لوست متن ته پام وکړي او په غور سره ورته غوږ ونیسي. تاسې د لوست متن په لوړ اواز ولولئ. له هغوی څخه وغواړئ چې له لوست څخه یې خه مفهوم اخېستی په ساده ژبه یې بیان کړي او موخې یې هم په ساه ژبه بیان کړي چې زده کوونکی ښه وپوهېږي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ښه تحکیم په خاطر ٤-٦ کسیزه ګروپونه جوړ کړئ. له ګروپونو څخه وغواړئ چې بې وزله او محتاج سړي سره د مرستې کولو اهمیت په هکله خبرې وکړي چې په کومو طریقو د هغوی سره مرسته وشي، په پای کې بیاهم نظرونه تبادله کړي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی د لوست د پای پوښتنې وکړئ چې د داسې خلکو سره د مرستې کولو د اهمیت دلیلونه بیان کړي چې ستاسې د لوست له هدف څخه مطمین شی. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د بې وزلو او غریبو خلکو سره د مرستې کولو د اهمیت او ګټو په هکله مثالونه راوړئ. | ۲ دقیقې |



# پنځلسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د نورو په غم او ښادۍ کې ګډون کول | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي په دې پوه شي چې دوستان د غم او ښادۍ په وخت کې یواځې پرېښږدي.<br>مهارت: د دوستانو په غم او ښادۍ کې ګډون وکړای شي.<br>ذهنیت: د دوستانو په غم او ښادۍ کې د ګډون له امله د خوښۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | د نورو په غم او ښادۍ کې ګډول کول او اهمیت یې درک کول | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم، ځینې انځورونه او کیسې | د لوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست د موضوع څخه خبر شي. او د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي په هغه څه چې پوهیږي بیان کړي. د هغوی ځوابونه کېدای شي د نوي لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. هغوی تشویق کړئ او د نوي لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | ښاغلی ښوونکی، له ټاکل شوو ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۲۹ مخ انځورونه وګوري، د هر ګروپ غړي د انځور په هکله نظر ورکړي. د ګروپ استازی دې نظرونه راټول کړي او د انځورنو پرمخ دې تشریح کړي. له هر ګروپ سره دې نظر شریک کړي.<br>د (وواياست او واورئ) پوښتنې وکړئ له زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې سم ځوابونه ورکړي او زده کوونکي پوه شي. د لوست متن ته د زده کوونکو پاملرنه جلب او په لوړ اواز یې ولولي. له نورو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره یې واوري. هغه څه چې له لوست څخه زده کوي، نورو ته په ساده ژبه بیان کړي. زده کوونکي وهڅوئ چې د لیدلو، غوږ نیولو، درک کولو او مفهوم اخېستلو مهارتونه قوي کړي او له هغوی څخه یو بادرکه اوربېدونکی جوړ شي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو په خوښه دوه دوه نفري ګروپونه د لوست د تحکیم لپاره جوړ کړي. له هغوی څخه وغواړئ چې د هغه دوست تمثیل وکړي چې د غم لرونکي دوست په غم کې شریک شوی وي او څرنګه ورسره غم شریکي کوي. بل ګروپ د یوه دوست سره چې ډېر خوشحاله وي. څرنګه خوښي ښکاره کوي او د هغوی په خوښۍ کې برخه اخلي، له نورو زده کوونکو وغواړئ چې څه نتیجه یې ترې اخېستې ده. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی د لوست د پای پوښتنې له زده څخه د موخې د لاسته راوړلو لپاره وپوښتئ. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | له نورو سره د غم او خوښۍ په مراسمو کې د شریکېدلو په هکله د کورنی د غړو سر بحث وکړئ. | ۳ دقیقې |



# شپاړسم لوست

۳۱-۳۲ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | صبر او حوصله | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي په ورځني ژوند کې باید د صبر او حوصلې اهمیت وپېژني.<br>مهارت: د ستونزو په وخت کې له صبر او حوصلې څخه کار واخلي.<br>ذهنیت: له حوصلې او صبر څخه د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | د صبر او حوصلې اهمیت په ورځني ژوند | |
| د لوست مرستندویه توکی | کتابچه، قلم، پوشمیر انځورونه او کیسي | |
| دتدریس میتود | ډله ییزکار، یوکسیزکار، سوال او ځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ. د (ووایاست) انګېزوي پوښتنې له زده کوونکو وکړئ. زده کوونکي آفاقي ځوابونه ورکوي. ښایي د هغوی ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. تاسې هغوی وهڅوئ او د نوي لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، هغه ګروپونه چې د انځورونو د لیدلو لپاره ټاکلي وو که چېرته د ګروپ کوم غړی تمبلي یا سستي کوي، کولای شي چې د هغه ګروپ غړی بدل کړي. وروسته له هغوی څخه وغواړي چې انځورونو ته په غور سره وګوري او په هکله یې نظر ورکړي. د ګروپ استازی نظرونه د انځورونو پرمخ تشریح کړي او له نورو سره نظر شریک کړي.<br>د (واورئ او ووایاست) پوښتنې له زده کوونکو وکړئ، ښایي زده کوونکي بېلابېل ځوابونه ورکړي، تاسې سم ځواب تکرار کړئ چې نور زده کوونکي وپوهېږي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې کتاب ته متوجه او په ځیر سره یې واوري. تاسې د (ځیرشئ) متن په لوړ اواز ولولئ. څو کسانو ته نوبت ورکړئ. په هغه څه چې پوه شوي دي په ساده ژبه بیان کړي. تاسې یې مهم ټکی بیاځلې تکرار کړئ. | ۲۰دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه په خپله خوښه ۲ درې کسیزه ګروپونه جوړ کړئ. له هغوی څخه وغواړئ یو ګروپ د غم په حالت کې له صبر او حوصلې څخه کار اخلي او بل ګروپ د یوې ستونزې په حال کې تمثیل کړي چې د بې صبرۍ له وجې د هغوی په منځ کې جنګ او جګړه پېښېږي. د دواړو ګروپونو د تمثیل څخه وروسته له نورو څخه د تمثیل د نتیجې پوښتنه وکړئ. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست په پای کې د لوست موخې ته د رسېدو په خاطر پوښتنې وکړئ ښایي د هغوی ځوابونه تاسو ته قناعت درکړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | په ورځني ژوند کې د صبر او حوصلې د اهمیت په هکله څه چې پوهېدلي یاست نوروته بیان کړئ. | ۳ دقیقې |






# اوولسم لوست

۳۳-۳۴ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | خیرخواهی | دلوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د خیر ښېګڼې غوښتلو په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: د خیر ښېګنې غوښتلو له طریقو سره عادت وکړای شي.<br>ذهنیت: له خیر ښېګڼې غوښتلو څخه د خوښۍ احساس وکړي. | دزده کړې موخې |
| | دښېګڼې غوښتلو پراهمیت پوهېدل، دنورو د خیرښېګڼې غوښتلو سره عادت | اساسی ټکی |
| | کتابچه، قلم او د ښېګنې غوښتلو په هکله ځینې کیسې | دلوست مرستندویه توکی |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، سوال او ځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، دحاضری اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره دپخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |







| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، مهم ټکي په واضح ډول بیان کړي او د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي هغه څه چې مخکې له مخکې یاد لري. ښایي آفاقي ځوابونه وکړي. امکان لري د هغوی ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه سریزه جوړه شي. تاسې هغوی وهڅوئ او د نوي لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی له مخکې ټاکل شوو ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۳۳ مخ انځورونه په ځیر سره وګوري. د هر انځور په هکله نظر شریک کړي د هر ګروپ استازی نظرونه جمع او په لوړ اواز دې نورو ته تشریح کړي. ښایي ځینې ګروپونو ته وخت ورسېږي چې خپل نظر شریک کړي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې وکړئ. په دې هکله ښايي بېلابېل ځوابونه وړاندې کړي. تاسې سم ځوابونه تایید او تکرار کړئ. او خپله هم پرې رڼا واچوئ.<br>- د زده کوونکو پام د ۳٤ مخ متن ته جلب کړئ. له هغوی وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي چې څه شی درک کوي. وروسته د متن په لوړ اواز ولولئ او زده کوونکو ته وخت ورکړئ په هغه څه چې پوه شوي دي په ساده ژبه بیان کړي. تاسې هم د لوست لنډیز په ساده ژبه بیان کړئ. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ښه تحکیم په خاطر زده کوونکي په څو ډلو وویشئ. ګروپونو ته دنده ورکړئ چې د خیرښېګڼې غوښتلو د ګټو او اهمیت په هکله خبرې وکړي. د خیرښېګڼې غوښتلو څو طریقې ځانګړې کړي او مثالونه راوړي د خپل کار نتیجه بیان او نظرونه سره شریک کړي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې وکړئ چې د لوست د هدف لاسته راوړلو څخه مطمین شي. ښایي د زده کوونکو هر یو د ښېګڼې غوښتلو په هکله ووايي چې ولې ښېګڼې غوښتونکي واوسو. قناعت ورکوونکي ځوابونه وړاندې کړئ. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ښېګڼې غوښتلو او د اهمیت په باره کې خپل نظر ملګرو سره شریکه کړئ. | ۳ دقیقې |




# اتلسم لوست

۳۶-۳۵ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | تېرېدنه او پخلاینه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید پوه شي چې سوله او بښنه د الله تعالی د رضایت سبب کیږي.<br>مهارت : زده کوونکي په عمل کې سوله او بښنه وکړي شي.<br>ذهنیت : د سولې او بښنې په کولو باندې ویاړ وکړي. | |
| اساسي ټکي | سوله او بښنه چې د الله تعالی د رضایت سبب ګرځي او د هغې د اهمیت درک کول | |
| دلوست مرستندویه توکی | کتابچه، قلم، یو شمېر انځورونه او ځینې کیسې | |
| د تدریس میتود | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخېستل، د کورنی کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | ۵ دقیقې |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست له موضوع څخه خبر شي. د (ووایاست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي آفاقي ځوابونه ورکوي. ښايي د هغوی ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. ځوابونو ته د لوست سره ارتباط ورکړئ او د لوست موضوع د تختې پرمخ ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د ګروپونو پام د ۳۵ مخ انځورونو ته واړوئ چې د ګروپونو هر غړی پکې برخه واخلي او د هر رسم په هکله نظر ورکړي. د هر ګروپ نظرونو سره راټول کړئ. په لوړ اواز د هر يو انځور تشریح کړي. ټول نظرونه ووایاست او یو له بل سره شریک کړئ.<br>- د (ووایاست او واورئ) پوښتنې وکړئ. زده کوونکي ځوابونه ورکوي. هغوی وهڅوئ سم او دقیق ځوابونه تکرار کړئ چې ښه ويپوهېږي.<br>- د زده کوونکو پاملرنه د ۳٦ مخ د ځیر شئ متن ته جلب کړئ او ترې وغواړئ چې په ځیر سره يې واوري او په مفهوم يې پوه شي. تاسې د لوست متن په لوړ اواز ولولئ. له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې څومره پوه شوي دي؟ په خپله ساده ژبه بیان کړي. د لوست په پای کې تاسې د لوست مهم ټکي په ساده ډول بیان کړي. | دلوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو څخه په خپله خوښه څلور نفري ګروپ جوړ کړئ چې تمثیل وکړي. دوه کسه څو ورځې کېږي چې یو له بل سره خفه دي، یو له بل سره خبرې نه کوي. دوه کسه نور راغلي دي د هغوی په منځ کې سوله کوي. هغوی ته سمه مشوره ورکوي. په پای کې نور زده کوونکي د تمثیل پایلې بیان کړي چې څرنګه سوله منځ ته راوړي او ولې هغوی په خپل منځ کې سوله کوي؟ | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د اطمېنان حاصلولو او د لوست د هدف د لاسته راوړلو په خاطر د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ. د پوښتنې ځواب له څو زده کوونکو څخه وغواړئ. سم ځواب تکرار کړئ چې ټول زده کوونکي په دې وپوهېږي چې عفوه او ښښنه ولې مهمه ده او سوله څرنګه او د کومو ټکو په مراعاتولو ټېنګ پاتې کېږي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | تېرېدنه او بخداینه په ژوندکې ولی مهمه ده؟ خپل نظر درتیدیدنی او بخداینی په هکله خپل مور او پلار سره شریک کړئ. | کورنی کار |



# نوولسم لوست

۳۸-۳۷ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| دلوست موضوع | له غم او خپګان لرېوالی | |
| دزده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید د جګرخونې د لاملونو سره بلد شي.<br>مهارت: له جګرخونې څخه د وتلو لارې پیداکړای شي.<br>ذهنیت: دا درک کړي چې ډېره جګرخوني د افسرده ګۍ سبب کیږي. | |
| اساسي ټکي | جګرخونې د عواملو درک کول، د جګرخونې په وخت کې د ډاډګیرنې اړتیا، د جګرخونې څخه د آرامۍ د لارو موندل | |
| د لوست مرستندویه توکی | کتابچه، قلم او یوشمېر نور انځورونه او ځینې کیسې | |
| دتدریس میتود | سوال اوځواب، لوستل، ډله ییزاو یو کسیزکار | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل، دکورنۍ کار پوښتنه، له نوي لوست سره دپخوانی لوست ارتباط | ۵ دقیقې |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست د موضوع څخه خبر شي. د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي په هغه څه چې له وړاندې پوهېږي ځواب ورکوي. ښايي د هغوی ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه سريزه وي. تاسې هم د رواني ناروغی له پلوه مثال راوړئ او د نوي لوست موضوع د تختې پرمخ وليکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی له ټاکل شوو ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۳۷ مخ انځورونه په غور وګوري او د هر انځور په هکله نظر وړاندې کړي. ښايي د زده کوونکو نظرونه مختلف وي. د ګروپ اتسازی دې نظرونه راټول کړي. انځورونه به تشريح کړي. نور زده کوونکی ورته غوږونه ونيسي او په پای کې به نظرونه شريک کړي. تاسې هم د هغوی خبرې تاييد کړئ او رسمونه په ساده ډول تشريح کړئ.<br>- د وواياست او واورئ) پوښتنې مطرح کړئ. څو کسه ځوابونه ورکوي، ښايي ځوابونه يې سم خو مختلف وي. تاسې سم ځواب تکرار کړئ چې زده کوونکي ښه وپوهېږي.<br>- د زده کوونکو پام د (ځيرشئ) متن ته جلب کړئ تاسې د لوست د متن په لوړ اواز ولولئ. وروسته له هغوی څخه وغواړئ چې څومره پوه شوي دي. تاسې د لوست مهم مفهومونه په ساده ډول بيان کړئ. زده کوونکو باندې ټينګار وکړئ هغه څه چې زده کوي په ورځني ژوند کې يې عملي کړي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د موضوع د تحکيم په خاطر له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د خپل تېر ژوند يوه کيسه وکړي چې کله جګرخون و علت يې څه و؟ او په کومه جګرخونی کې يې له دوستانو څخه څه هيله لرله؟ آيا چا ورسره زړه سوی کړی و او که نه؟ ښايي ځينې زده کوونکي په کيسه کولو ډېر وخت ونيسي. په پای کې نتيجه لاسته راوړئ چې ډېره جګرخوني کول انسان خفه کوي او زړه سوی ته اړتيا لري. | د لوست تحکيم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د موخې د لاسته راوړلو او اطمېنان حاصلولو په خاطر پوښتنې مطرح کړئ. چې زده کوونکي ځواب ورکړي او پوه شي چې هيڅ وخت د بل چا د جګرخونی لامل نشي يا د جګرخونی په وخت کې بې حوصلې نشي او بدې خبرې ونکړي. د جګرخونی د له منځه وړلو په خاطر له دوستانو سره خپل راز شريک او يوه ښه خاطره په ياد راوړي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | د ډاډګیرنې د اهمیت په هکله څه موچی زده کړی، ملګروته بیان کړئ. | کورنی کار |






# شلم لوست

۳۸-۳۷ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | په ژوند کې د خوښۍ اهمیت | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید د خوشحالۍ په ګټو او لاملونو پوه شي.<br>مهارت: د خپلې او نور د خوشحالۍ لپاره اسباب برابر کړای شي.<br>ذهنیت: د رواني پلوه د خوشحالۍ اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | په ورځني ژوند کې د رواني پلوه د خوشحالۍ اهمیت درک کول | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم او ځیني انځورونه او کیسې | |
| دتدریس میتود | ډله ییز او یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنی کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |








| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مهم ټکي په ساده ډول بیان کړئ. د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. ښايي د زده کوونکو آفاقي ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه پيل وي. هغوی وهڅوئ ځوابونو ته د لوست سره اړيکه ورکړئ. د لوست موضوع د تختې پرمخ وليکئ. | ۷ دقيقې |
| د لوست ورکول | – ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو له ټاکلو شوو ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۳۹ مخ انځورونه په ځير سره وګوري. هريو د رسمونو په هکله خپل نظر وړاندې کوي. او خپل نظرونه جمع کړي. هر يو انځور دې تشريح کړي. ښايي څو ګروپونو ته وخت ورسپړي. په پای کې دې خپل نظرونه شريک کړي. تاسې د لوست عمده ټکي د انځور له مخې په ساده ډول بيان کړئ.<br>– د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. څو زده کوونکي ځوابونه ورکوي. ښايي مختلف او يا سم ځوابونه ورکړي. دقيقې پوښتنې تکرار کړئ او هغوی وهڅوئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د (ځيرشئ) متن ته پاملرنه وکړي او په لوړ اواز سره يې ولولي. په پای کې له هغوی پوښتنه وکړئ چې څومره پوهېدلي دي. چې په خپله ژبه يې بيان کړي. تاسې هغوی تشويق او د لوست مهم ټکي په ساده ډول بيان کړئ. | ۲۰ دقيقې |
| د لوست تحکيم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ښه تحکيم په خاطر ګروپونه جوړ کړئ او له هغوی څخه وغواړئ چې د يو بل په مشوره د خوښۍ اسباب او لاملونه لست ترتيب او ګټې يې په ژوند کې تر بحث لاندې ونيسي او وواياست چې د ډېرې خوښۍ په وخت کې بايد څه وکړي او د کومو کارونو د کولو څخه پرهېز وکړي؟ يعنې بې ځايه خوښي او ټوکې ونکړي. | ۵ دقيقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی د لوست د موخې ترلاسه کولو د مطمين کېدو په خاطر د پای پوښتنې وکړئ. ښايي ځوابونه مختلف وي. سم ځوابونه تکرار کړئ او ووايي چې خوښي پر انسان څه او په کومه طريقه کولای شو د خپلو دوستانو په خوښۍ کې برخه واخلو. | ۵ دقيقې |
| کورنی کار | د انسان په ژوند کې د خوښۍ د اهميت په هکله خپلو والدينو سره بحث وکړی او دهغوی نظرو اخلئ. | ۳ دقيقې |






# یوویشتم لوست

۴۱-۴۲مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ځان ساتنه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي د ځان ساتنې په طریقو باندې وپوهیږي.<br>مهارت: خپل ځان وساتلای شي.<br>ذهنیت: له خپلې جوړتیا څخه د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | د جامو او ځان ساتلو په څو طریقو باندې پوه شي، د ځان ساتنې اهمیت درک کول | |
| د لوست مرستندویه توکی | قلم، کتابچه، ځینې انځورونه او کیسې | |
| د تدریس مېتود | سوال اوځواب، ډله ییز او یوکسیزکار | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، دحاضرۍ اخیستل، دکورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره دپخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |







| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ او له زده کوونکو څخه د انګېزې پوښتنې مطرح کړئ چې هرڅه چې د مخکې څخه پوهېږي، ځواب ورکړي. ښایي د هغوی ویناوې د لوست د پیل لپاره یوه ښه سریزه وي. هغوی تشویق کړئ او د لوست عنوان پر تخته ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| دلوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، د ډله ییز فعالیت او د انځورونو د کتلو لپاره د ډلې له غړو څخه وغواړئ چې د ٤١ مخ انځورونو ته ځیر شي. خپلې نظریې د هر انځور په هکله بیان کړي. ښایي نظریې بېلابېلې وي. د هرې ډلې استازی نظریې سره توحید کړي نورو ته دې په لوړ غږ انځورونه تشریح کړي او نورو ډلو سره د نظر تبادله وشي.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ. ښایي ټول وغواړي چې ځواب ورکړي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ، سم او کره ځوابونه تکرار کړئ او تاسو یې هم په هکله معلومات ورکړئ چې زده کوونکي ښه پوه شي.<br>- د زده کوونکو پام د لوست متن ته واړوئ. له هغوی وغواړئ په ځیر غوږ ونیسي چې څومره مفهوم اخلي. بیا لوست په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو غواړئ څه چې یې درک کړي دي په ساده ژبه بیان کړي. په پای کې تاسو هم د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې کومه پوښتنه پاتې نشي. | ۲۰ دقیقې |
| دلوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره زده کوونکي په ډلو وویشئ. له څو کسانو وغواړئ چې د ساتنې (ځان، کالیو او نورو شیانو) لپاره خپلو کې خبرې وکړي. خپل معلومات سره شریک کړئ او نورې ډلې د بې پروایی په هکله او د ځان د نه ساتنې چې د کومو زیانونو لامل ګرځي، نظر ورکړي. ښایی د دواړو ډلو نظریو لوست لا تحکیم کړي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د اطمېنان او د لوست د موخو د ترلاسه کولو په خاطر د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي ښه دلیلونه وړاندې کړي او د موضوع اهمیت درک کړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ځان ساتنې د اهمیت په هکله او د هغو شیانو نومونه چې ستاسو روغتیاته زیان رسوی خپل د کورنۍ غړونه ووایاست. | ۳ دقیقې |







# دوه ويشتم لوست

۴۴-۴۳ مخ

وخت : ۴۵ دقيقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د ناروغيو څخه وقايه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي بايد د ناروغيو د وقايې په طريقو پوه شي.<br>مهارت: د ناروغانو او د ناروغيو عواملو څخه ځان لرې کړای شي.<br>ذهنيت: د ناروغيو څخه د وقايې اهميت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | دناروغيو د عواملو څخه وقايه، دناروغيو څخه دوقايې داهميت درک کول | |
| د لوست مرستندويه توکي | قلم، کتابچه، انځورونه او ځيني کيسې | |
| دتدريس ميتود | ډله ييز او يوکسيزکار، پوښتنه او ځواب | |
| مقدماتي فعاليتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقيقې |







| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ. څو زده کوونکي د لوست د موضوع سره بلد شي او د (ووایاست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. هغوی په آفاقي ډول ځواب ورکوي. ښایي د هغوی ځواب مرسته وکړي چې په آسانه نوي لوست ته ورننوځئ. هغوی تشویق کړئ او د نوي لوست عنوان پر تخته ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له ډلو څخه وغواړئ چې د ۴۳ مخ انځورونو ته ځیر شي هر یو د هر انځور په هکله نظر ورکړي. د هرې ډلې استازي نظرونه سره توحید کړئ او په لوړ غږ هر انځور نورو ته تشریح کړئ او نظریې سره تبادله کړي. په پای کې تاسو هم عمده او د یادولو وړ ټکي تکرار کړئ.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ. هغوی به بېلابېل ځوابونه وړاندې کړي، تشویق یې کړئ او ددې لپاره چې ناروغ نشئ او یا داچې ولې ناروغ شخص ته نږدې نشي دلیلونه وړاندې کړئ چې زده کوونکي په ښه توګه زده کړي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د (ځیرشئ) متن ته ښه پام وکړي په ځیر غوږ ونیسي چې مفهوم یې درک کړي. بیا تاسې د لوست متن په لوړ غږ ولولئ او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې څومره یې زده کړي دي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې لوست په ساده ژبه بیان کړي او عمده ټکي یې په خپله تکرار کړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره یو څلورکسیزه ډله جوړه کړئ چې د یوې کورنۍ رول ولوبوي. هغه ډله چې د کورنۍ یو غړی ناروغ دی، د کورنۍ نور غړي په څه ډول د ناروغ ساتنه کوي او په څه ډول خپل ځان او خپل ماشومان وقایه کوي. د تمثیلي کار پایلې له نورو څخه وپوښتئ او لوست ته تحکیم ورکړئ. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي ځواب ورکوي او پوهېږي چې څه ډول ځانونه ساتي او د لاسونو د مینځلو پر اهمیت پوهېږي او د لوست موخې به ترلاسه شي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ناروغیو پر وړاندې د وقایې په باره کې هرڅه چې پوهېږي ملګرو ته هم بیان کړئ. | ۳ دقیقې |




# درویشتم لوست

۴۵-۴۶ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د خپل سرى درملنى زيانونه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید په خپل سر درمل خوړلو په زيانونو پوه شي.<br>مهارت : د ډاکټر له نسخې پرته درملو خوړلو څخه ډډه وکړای شي.<br>ذهنیت: د خپل سر درمل خوړلو څخه د ځان ساتنې اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | په خپل سر د درمل کارولو زيانونو درک کول، په خپل سر درمل خوړلو څخه ډډه کول | |
| د لوست مرستندویه توکی | کتابچه، قلم، انځورونه او ځینې اړونده کیسې | |
| د تدریس مېتود | ډله ییزکار، سوال اوځواب او ځانګړي کارونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرى اخیستل، د کورنى کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانى لوست ارتباط | ۵ دقیقې |




| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
| --- | --- | --- |
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ. چې زده کوونکي د لوست پر موضوع پوه شي او د انګېزې پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي د پخوانی پوهې له مخې ځواب ورکوي. ښایي د هغوی ځوابونه د لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. ځوابونو ته د لوست سره اړیکه ورکړئ او د نوي لوست عنوان پر تخته ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د انځورونو د کتلو د فعالیت لپاره د مخکې ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ٤٥ مخ انځورونه په ځیر وګوري او هغه څه چې برداشت کوي د هر انځور په هکله د ډلو له غړو سره شریک کړي. بیا د ډلې استازي نظریې سره راټولې کړي او نورو ته یې تشریح کړي.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ او له زده کوونکو وغواړئ چې خپل دلیلونه بیان کړي چې ولې هغه درملو چې ډاکټر یو ناروغ ته لارښوونه کوي بل ناروغ شخص ته ورنکړل شي. تاسو هغوی سره مرسته وکړئ او معلومات ورکړئ.<br>- د زده کوونکو پام د ٤٥ مخ د (ځیرشئ) متن ته واړوئ او ترې وغواړئ چې په ځیر سره واوري په هغه څه چې پوهېږي. متن په لوړ غږ ولولئ او له هغوی وغواړئ چې له متن څخه یې څه زده کړي په ساده ژبه بیان کړي. تاسو هم د لوست اساسي مفهومونه په ساده ډول بیان کړئ او هغوی د لوست عمده ټکو ته متوجه کړئ. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره لاندې فعالیت په ټولګي کې ترسره کړئ. ټولګی په ډلو وویشئ. بیا له ډلو څخه وغواړئ چې خپلې نظریې په خپل سر او تاریخ تېرو درملو د زیانونو په هکله له نورو سره شریکې کړي. بیا د نورو ډلو سره نظر تبادله کړئ. ښایي د هغوی نظرونه لوست ته تحکیم ورکړي. | دلوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د موخو د ترلاسه کولو لپاره د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ. د هغوی ځوابونه د ډاکټر له مشورې پرته درمل اخیستلو د زیانونو په هکله او یا دا چې په خپل سر درمل نه اخیستل څه اهمیت لري، واضح کوي او ستاسې اطمینان د لوست په وړاندې کولو کې به ترلاسه شي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | په خپل سر درملنې د زیانونو په هکله خپلې مور سره بحث وکړئ. | کورنی کار |






# څلیرویشتم لوست

۴۷-۴۸ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| دلوست موضوع | طبیعي پېښې | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید پوه شي چې د طبیعي پېښو په وړاندې د ځان ساتنه وکړي.<br>مهارت : د طبیعي پېښو؛ لکه: سېلاوونو، توپانونو او زلزلې څخه د ځان ساتنه وکړای شي.<br>ذهنیت: د طبیعي پېښو پر وړاندې د ځان ساتنې اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | د طبیعي پېښو پېژندل، د طبیعي پېښو څخه د ځان ساتنې اهمیت درک کول | |
| د لوست مرستندویه توکی | قلم، کتابچه، انځورونه او ځینې کیسې | |
| د تدریس میتود | پوښتنه او ځواب، ډله ییز او ځانګړي کارونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |







| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست د موضوع څخه خبر شي او د (وواياست) انګېزوي پوښتنه مطرح کړئ. زده کوونکي د هغه څه په هکله چې پوهېږي، ځواب ورکوي. ښايي د هغوی ځوابونه د نوي لوست لپاره یو ښه پیل وي. ځوابونو ته د لوست سره اړیکه ورکړئ او د نوي لوست سرلیک پر تخته ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو پام د ٤٧ مخ انځورونو ته واړوئ چې ټول غړي پکې برخه واخلي او د هر انځور په هکله نظر ورکړي. د هرې ډلې استازي نظرېې سره یوکړئ او نورو ته هر انځور په لوړ غږ تشریح کړئ او ټول زده کوونکي د نورو نظرېې اوري او نظر تبادله کوي.<br>– د(واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ، زده کوونکي ځوابونه ورکوي. هغوی تشویق کړئ، سم او کره ځوابونه تکرار کړئ چې ښه پوه شي.<br>– د زده کوونکو پام د ۴۸ مخ متن ته واړوئ او له هغوی وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي چې د لوست په مفهوم پوه شي. تاسو د لوست متن په لوړ غږ ولولئ او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې لوست یې څومره زده کړی، په ساده ژبه بیان کړي. په پای کې تاسو هم د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي ښه پوه شي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، زده کوونکي په ډلو وويشئ، د هرې ډلې غړو ته دنده ورکړئ چې د طبیعي پېښو؛ لکه: زلزلې، توپان، سېلاوونو، تندر او نور په هکله په خپلو کې سره خبرې وکړي. ددې پېښو زیانونه لست او پر وړاندې یې د ساتنې لارې چارې وټاکي. بیا نظر تبادله کړئ، ښايي چې د ډلې نظرونه لوست تحکیم کړي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د اطمېنان د ترلاسه کولو او د لوست موخو ته د رسېدو په خاطر د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ. ښايي زده کوونکي ځواب ورکړي چې په سخت توپان کې په خپلو کورونو کې واوسو او د کړکیو لاندې ونه درېږو. په زلزله کې میدانو ته ووځو. د ځان ساتنې طريقې ددې لپاره مهمې دي چې د پېښو په وخت له هغوی څخه کار واخېستل شي او خپل ځان وژغوري. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | د طبیعي پېښو څخه د ځان ساتنې په هکله څه مو چې زده کړي، خپلو ورونو او خویندونه بیان کړئ. | کورنی کار |






# پنځه ویشتم لوست

۴۹-۵۰ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | چاپېريال ساتنه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید پوه شي چې د کثافاتو او باطله توکو خپرول د اوسېدلو چاپېريال ککړوي.<br>مهارت: د اوسېدلو د چاپېريال د ککړتیا څخه مخنیوی وکړای شي.<br>ذهنیت: د پاک او سالم اوسېدلو چاپېريال په اهمیت وپوهېږي. | |
| اساسي ټکي | د اوسېدلو چاپېريال د ککړولو څخه مخنیوی، د پاک او سالم اوسېدلو چاپېريال اهمیت درک کول | |
| د لوست مرستندویه توکی | قلم، کتابچه، ځینې انځورونه او کیسې | |
| دتدریس میتود | پوښتنه او ځواب، ډله ییز او ځانګړي کارونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنی کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | ۵ دقیقې |







| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ، د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي کوم شي باندې چې پوهېږي، ځواب ورکوي. ښايي د هغوی ځوابونه هغومره د قناعت وړ نه وي خو کولای شي چې د نوي لوست لپاره ښه پیل وي. ځوابونو ته د لوست سره اړیکه ورکړئ او د لوست سرلیک په تخته ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د مخکې ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ٤٩ مخ انځورونو ته ځیر شي، د هر انځور په هکله خپل نظر بیان کړي. تاسو ډلې د نظر لاندې ونیسئ چې ټول غړي یې په ډله ییز کار کې برخه واخلي. په پای کې د ډلې استازي نظرونه توحید کړئ او په لوړ غږ سره یې تشریح کړئ. تاسو هم د هغوی خبرې تایید او لا رڼا پرې واچوي.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. وګورئ چې زده کوونکي څه ځواب ورکوي او که په هکله یې کومه کیسه جوړه کړئ چې سره پرتله شي، ښه به وي. لکه د روغتیا له پلوه په پاکه هوا کې لوبې کول او د انسان د روح ښاد ساتل.<br>- د زده کوونکو پام د ۵۰ مخ متن ته واړوئ. له هغوی وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي چې څه پوهېږي. تاسو متن په لوړ غږ ولولئ او له هغوی پوښتنه وکړئ چې څه یې درک کړي دي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې څه یې زده کړي په ساده ژبه بیان کړي. په پای کې تاسو هم د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي ښه پوه شي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم په خاطر زده کوونکي په ډلو وویشئ. له هغوی څخه وغواړئ چې د اوسېدو د چاپېریال ککړتیا د مخنیوي په تګلارو باندې خپلو کې خبرې وکړي. د ککړ چاپېریال زیانونه او د پاک چاپېریال ګټې ځان سره یادداشت کړي. په پای کې څو ډلو ته وخت ورکړئ چې خپلو کې نظر تبادله کړي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د اطمینان ترلاسه کولو او د لوست موخې ته د رسېدو لپاره د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ. ښايي د هغوی ځوابونه ستاسې قناعت ترلاسه کړي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | د چاپېریال ساتنې د اهمیت په هکله څه موچې زده کړی هغه دمور او پلار سره شریک کړئ. | کورنی کار |






# شپږویشتم لوست

۵۲-۵۱ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د حیواني ناروغیو څخه ځان ساتنه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید پوه شي چې د ناروغو حیواناتو سره تماس د ناروغیو د لېږد لامل ګرځي.<br>مهارت: د ناروغو حیواناتو څخه ځان لرې وساتل شي.<br>ذهنیت: د حیواناتو د ناروغیو څخه د ځان ساتنې اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | د حیواني ناروغیو لېږد، د حیواني ناروغیو څخه ځان ساتنه او اهمیت درک کول | |
| د لوست مرستندویه توکي | قلم، کتابچه، انځورونه او کیسې | |
| د تدریس میتود | پوښتنه او ځواب، ډله ییز فعالیتونه او ځانګړي کارونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | ۵ دقیقې |








| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ څو زده کوونکي د لوست د موضوع څخه خبر شي او د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي آفاقي ځوابونه ورکوي، ښایي د هغوی ځوابونه دقيق وي، ځوابونو ته لوست سره اړيکه ورکړئ او د نوي لوست سرليک په تخته وليکئ. | ۷ دقیقې |
| دلوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له مخکې ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ۵۱ مخ انځورونو ته په ځير وګوري، او د هر انځور په هکله خپل نظر ورکړي. په پای کې د ډلې استازي د خپلې ډلې د غړو نظرونه سره توحيد کړي او په لوړ غږ د انځور په مخ تشريح کړي او نورو سره نظر تبادله شي. د هغوی د خبرو په تاييد سره د يادولو وړ ټکي بيا تکرار کړئ.<br>- د (واورئ او وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي بېل بېل ځوابونه ورکوي. هغوی تشويق کړئ. ځينې کيسې برابرې کړئ او په خپل وخت يې زده کوونکو ته وواياست چې موضوع په ښه شکل درک او مهارت ترلاسه کړي.<br>- د زده کوونکو پام د ځير شئ متن ته راواړوئ، له هغوی وغواړئ چې په ځير غوږ ونيسي. تاسو متن په لوړ غږ ولولئ او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې څه يې زده کړي په ساده ژبه بيان کړي. په پای کې تاسو هم د لوست مهم ټکي په ساده ژبه بيان کړئ. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکيم په خاطر زده کوونکي پر ډلو ووېشئ او ترې وغواړئ چې د حيواني ناروغيو څخه د ځان ساتنې په هکله په خپلو کې بحث وکړي. د خپل کار پايلې بيان کړئ او نورو سره نظر تبادله کړئ. ښايي د هغوی نظرېې لوست تحکيم کړي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ. ښايي د هغوی د ځوابونو څخه د لوست د موخو د ترلاسه کولو اطمېنان حاصل شي. ناروغ حيوان تل ګوښه او خوبوړی وي. د ناروغ حيوان څخه لرې والی د ناروغی د لېږد مخه نيسي | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ناروغ حيوان څخه د ځان ساتنې د اهميت په هکله خپل نظر د کورنی غړو سره شريک کړئ. | ۳ دقیقې |






# اووه ویشتم لوست

۵۳-۵۴ مخ

وخت: ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د هوا تودوخه او يخنی | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید تودوخې او یخنۍ سره سم د کالیو اغوستلو پر اهمیت پوه شي.<br>مهارت: د هوا د تودوخې او یخنۍ څخه ځان وساتلای شي.<br>ذهنیت: د کال د فصلونو سره سم د هوا د تودوخې او یخنۍ اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | د هوا تودوخې او یخنۍ بدلون د کال د فصلونو سره سم، د تودوخې او یخنۍ څخه د ځان د ساتنې اهمیت | |
| د لوست مرستندویه توکی | قلم، کتابچه، انځورونه او ځینې کیسې | |
| د تدریس میتود | پوښتنه او ځواب، ډله ییز او ځانګړي کارونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنی کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | ۵ دقیقې |







| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په موضوع پوه شي. د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي د هغه څه په هکله چې پوهېږي ځواب ورکوي. ښايي د هغوی ځوابونه د قناعت وړ نه وي، خو هغوی تشويق کړئ او د لېږو نورو معلوماتو په ورکولو د نوي لوست سرليک په تخته وليکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو د مخکې ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ۵۳ مخ انځورونه په ځير وګوري. د هر انځور په هکله نظر ورکړي. په پای کې د هرې ډلې استازی چې د خپلې ډلې نظريې سره توحيد کړي دي په لوړ غږ تشريح کړي. تاسو هغوی تشويق کړئ او د انځورونو عمده ټکي په ساده ژبه بیان کړئ.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ. وګورئ چې هغوی څه ډول ځوابونه وړاندې کوي. تشويق يې کړئ، که کومه کيسه مو د کاليو اغوستلو او لمر ته ګرځېدلو په هکله چمتو کړي هغه بیان کړئ او که نه نو لږ نور معلومات ورکړئ.<br>- د ۵٤ مخ د ځير شئ متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځير غوږ ونيسي، بيا له هغوی څخه وغواړئ چې د لوست څخه يې څه زده کړي، بيا څو کسانو ته وخت ورکړئ چې څه يې زده کړي هغه په ساده ژبه بیان کړي. په پای تاسو خپله د لوست اساسي مفهومونه په ساده ژبه بیان کړئ. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکيم لپاره زده کوونکي په ډلو وويشئ. د څو ډلو څخه وغواړئ چې د کال د فصلونو د ښه والي په هکله خبرې وکړي او څو نورې ډلې د ناروغيو د عواملو او د هغوی څه د ځان ساتنې په هکله خبرې وکړي او نورو سره نظر تبادله کړي. ښايي د دوی نظريې لوست تحکيم کړي. | د لوست تحکيم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، ددې لپاره چې اطمېنان ترلاسه کړئ چې لوست په څه ډول وړاندې شوی او هدف يې ترلاسه شوی که نه؟ د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي د هوا د تودوخې او يخنۍ څخه د ځان ساتنې او انسان او نبات باندې د هغوی د اغېزې په هکله په څه چې پوهېږي، ووايي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | د هوا د تودوخې او يخنۍ د اغېزې په هکله خپل نظر دوستانو سره شريک کړئ. | کورنی کار |




# اته ویشتم لوست

۵۶-۵۵ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د تنباکو زیانونه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د نشه يي توکو په عمده زیانونو پوه شي.<br>مهارت: د سګرټو، چلم او نسوارو څخه ځان لرې وساتلی شي.<br>ذهنیت: ددې توکو څخه د لرې والی اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د نشه یی توکو عمده زیانونه، ددې توکو څخه د لرې کېدلو اهمیت | اساسي ټکی |
| | قلم، کتابچه، انځورونه ځیني کیسې، د غاښونو کریم او برش | د لوست مرستندویه توکی |
| | پوښتنه او ځواب، ډله ییز او ځانګړي کارونه | د تدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنی کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخوانی لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |




| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي ځرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په موضوع پوه شي او انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. ښایي د هغوی آفاقي ځوابونه د نوي لوست لپاره یو ښه پیل وي. هغوی تشویق کړئ، ځوابونو ته د لوست سره اړیکه ورکړئ او د نوي لوست عنوان پر تخته ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، د انځورونو د لیدلو د فعالیت لپاره د وار دمخه ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې د ۵۵ مخ انځورونو ته په ځیر وګوري او هر یو د انځورونو په هکله خپل نظر وړاندې کړي. د هرې ډلې استازی نظرېې ډلبندي کړي او په لوړ غږ دې نورو ته تشریح کړي. تاسو هغوی تشویق کړئ او په هکله یې خبرې وکړئ.<br>- د (واورئ او ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ. ښایي ځوابونه سره توپیر ولري. هغوی تشویق کړئ، سم او کره ځوابونه تکرار کړئ چې ښه پوه شي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن ته پام واړوي. بیا لوست په لوړ غږ ولولئ او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې څومره پوهېدلي او څو زده کوونکي د هغه مفهوم په ساده ژبه بیان کړي او تاسو یې هم په هکله معلومات ورکړئ چې ښه پوه شي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم لپاره څلور کسه په خپله خوښه راوغواړئ چې ډرامه تمثیل کړي. لومړی کس د سګرټو رول، دویم کس د نسوارو رول، دریم کس د بدن رول او څلورم کس د غاښونو د برش او کریم رول ولوبوي. هغوی ته ښه معلومات ورکړئ چې ښه تمثیل وکړای شي او له نورو زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر وګوري او پایلې واخلي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د اطمینان ترلاسه کولو او هدف ته د رسېدو په خاطر د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې د نشه یی توکو د زیانونو او د سګرټو، چلم او نورو نشه یی توکو د لوګي څخه لرې والی تکرار شي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د نشه يي توکو له خوا څخه د ځان ساتنې د اهمیت په هکله خپلې کورنۍ سره بحث وکړئ. | ۳ دقیقې |


